# طلوع افغان

نبوي مرغلري

**رسول الله (ص) فرمايلي دي:**

ژباړه: دآزمايش په وخت کي د الله (ج) عبادت کول، داسي فضيلت لري، لکه زما سره چي يې يو ځای هجرت کړی وي.

«رواه المسلم»

غوره ويناوي

**عبدالهادي "همت":**

خپل جسم او ذهن دواړه تل فعال ساته!

د امتياز څښتن:

د کندهار اطلاعات او فرهنګ رياست

مؤسس: مولوي صالح محمد "هوتک"

په اوونۍ کي دوه واره چاپيږي

د تأسيس کال: ۱۳۰۰ لمريز، يکشنبه ۱۰/شعبان المعظم/۱۴۴۶ هـ ق، ۲۱/سلواغه/ ۱۴۰۳ ل کال – ګڼه (۶۸)

Sunday-9-February-2025 Issue: 68


## د مطالبو سرليکونه



د طلوع افغان خبري (سرليکنه)

عصري علوم؛

## د يو ملک د ځان بسياينې سبب!

د اسلام په تاريخ کي د عثماني خلافت تر سقوط پوري به معمول داو، چي د عصري او ديني زده کړو له پاره به يو قسم اداره وه، دواړه علوم به په همدې اداره کي تدريس کېدل.

دنيا چي نن ورځ خومره پرمختللې ده، د طب، انجينري، معماري، اقتصاد او نورو برخو پرمختګونو تاريخونو ته که وکتل سي، زياته برخه يې د مسلمانانو ده.

دا چي اوس په اسلامي ټولنو کي د عصري او ديني علومو له پاره جلا جلا ادارې دي، دا اصلاً د مسلمانانو اصلي ذوق نه و، د اسلام اصل تاريخ دا نه دی، چي د ديني او عصري زده کړو له پاره دي جلا ادارې وي، يو مسلمان دواړو ته علی السويه ضرورت لري.

په کفري هيوادونو کي عصري زده کړو ته د يو ضرورت په نظر کتل کېږي، چي د وطن آبادي په دې سره راځي، ولسونه همسياله کېږي، د دولت او خصوصي سکټور ادارې ور باندي چلېږي، ټولنه پر ځان بسيا کېږي، لېکن موږ عصري علومو او عصري ادارو ته د يو عبادت په نظر ګورو، نه يوازي دا چي عصري علوم د يو ملک د ځان بسياينې او پرمختګ سبب دی، بلکي موږ په دې نظر ورته ګورو، چي د اسلامي نظام حاکميت يو عبادت دی، همدار نګه ساتنه يې هم عبادت دی او ساتنه يې په عصري علومو سره کېدای سي.

مهمه داده چي په يوه اسلامي ټولنه کي ديني او عصري علومو دواړو څخه د کلمة الله د کلمې د لوړوالي له پاره استفاده وسي، صحابه کرامو به کوښښ کاوه، چي له کفارو سره د جهاد له پاره ځانونه ډېر ښه اکمال کړي او د وخت پرمختللي وسلې پيدا او نوي تخنيکونه وکاروي، اوس چي نړۍ ډېره زياته پرمختللې ده، اړتيا داده، چي مسلمانان هم له کفارو سره ځانونه له هره اړخه سيال کړي.

که چيري کفري مملکتونه اټوم بمونه جوړوي، مسلمانان هم مسئوليت لري، چي د ځان د دفاع او د کفارو د غلبې څخه د ځان ساتني له پاره اټوم بمونه ولري، همداسي نو په هره برخه کي لازمه ده، چي له کفارو سره سيالي وکړي او دا سيالي په عصري علومو سره کېدای سي، اټوم جوړول د عصري علومو له بر کته کېږي.

راسئ! د يوې پرمختللي او سيالي اسلامي ټولني د رغوني له پاره عصري علومو ته مخه وکړو، وده ورکړو او په مرسته يې خپل مسلمان ملت هوسا، ځواکمن او د کفارو له محتاجۍ وساتو.

اداره

## افغانستان او چين د اقتصادي او ترانزيټي اړيکو پر دوام ټينګار او جاپان خپلو مرستو ته ادامه ورکوي

د ټولګټو وزارت سرپرست ملا محمد عيسی ثاني، د چين له سفير «ژاو شينګ» سره او د اقتصاد وزارت سرپرست قاري دين محمد حنيف، په کابل کي د جاپان له سفير تاکايوشي کوروماياسره کتلي دي.

د ياد وزارت په خپره سوي خبرپاڼه کي راغلي چي په دې کتنه کي د ټولګټو وزارت سرپرست د افغانستان او چين پر ټولنيزو، اقتصادي او سياسي اړيکو خبري کړي او د چين له دوامداره همکاريو څخه يې مننه کړې ده.

هغه د واخان دهلېز (ورېښمو لارې) په اړه چي افغانستان له چين سره نښلوي، هم خبري کړي او ويلي يې دي، چي د دې سړک د سروې چارې د ټولګټو وزارت له لوري بشپړې سوي او د ډيزاين چارې يې جريان لري.

په کتنه کي همدارنګه، د افغان – ټرانس پروژې په اړه چي د مرکزي آسيا هيوادونه د افغانستان له لارې له جنوبي آسيا هيوادونو ۴مخ

## د کتابونو درې ورځنی نندارتون پای ته ورسېدی

په کندهار کي د کتابونو درې ورځنی نندارتون، د زرونو کتابونو په پلورلو سره پای ته ورسېدی.

د دې ولايت د اطلاعاتو او فرهنګ رياست د عامه کتابتون مدير عبدالصمد ستري ويلي، د کتابونو د دې درې ورځني نندارتون څخه زرونو خلکو ليدنه کړې او زرونه ۴مخ

## يو چيک ډيم او د اوبو کندي ګټې اخيستني وسپارل سوې

د کندهار ولايت په نېش ولسوالۍ کي يو چيک ډيم جوړ او په ياده ولسوالۍ کي ۱۵ زره د اوبو کندي جوړې او ګټې اخيستني سپارل سوي دي.

د کرهنې، اوبو لګولو او مالدارۍ رياست وياند محمد حنيف حقمل ويلي، د ملګرو ملتونو د کرهنې ۴مخ

## د ۱۹ کېلو متره سړک رغنيزي چاري بشپړې سوې

د کندهار ولايت د سپين بولدک ولسوالۍ اړوند فرضي کرښې ته څېرمه، د ۱۹ کېلو متره سړک رغنيزي چاري بشپړې سوي دي.

د ۲۰۵ البدر قول اردو وياند نذير احمد شکيب ويلي، د شېرمي سرحدي عبيده لواء د انجنيرۍ مسلکي ټيمونو د مازل ګلۍ څخه، د شېرم "جهادي" کنډک تر اشېزو کلي پوري د ۱۹ کېلو متره سړک رغنيزي چاري په اساسي ډول ۴مخ

## په ۲۰۵ البدر قول اردو کي اته ميله اوبوس توپونه ترميم سول

د کندهار د ۲۰۵ البدر قول اردو مطبوعاتي مسئولينو ويلي، د ثقيله وسلو په ورکشاپ کي اته ميله اوبوس توپونه، د مسلکي او تخنيکي انجنيرانو په هڅو چي د تېري ادارې پر مهال تخريب سوي وو، ترميم او ګټې اخيستني ته سپارل سوي دي.

د يادوني وړ ده، چي تر دې وړاندي هم څو ځله، بېلابېلي وسلې او وسايط په همدې قول اردو کي ترميم سوي وو.

## له ۲۲۰ بېوزلو کورنيو سره مرسته وسوه

له بېوزلو او غريبانو سره د مرستي کولو ادارې، له ۲۲۰ کورنيو سره مرسته وکړه.

د کندهار ولايت مقام مسئولينو ويلي، د شيخ صاحب حفظه الله تعالی د ځانګړي پېرزويني له مخي، په کندهار کي له بېوزلو او غريبانو سره د مرستي کولو ادارې د چهار شنبې په ورځ له ۲۲۰ کورنيو سره، د خوراکي توکو او نغدو پيسو مرسته وکړه.

د مسئولينو په خبره، په ياده مرسته کي ۴مخ

## د اومانو يوه کارخونه کشف او له منځه يووړل سوه

د کندهار ولايت په لوړ ميوند ولسوالۍ کي، د اومانو يوه کارخونه کشف او له منځه وړل سوې ده.

د امنيې قوماندانۍ وياند مولوي اسدالله جمشيد ويلي، امنيتي ځواکونو د لوړ ميوند ولسوالۍ د آسوده کاريز په ساحه کي، يوه د اومانو کارخونه کشف او له منځه وړې ده. ۴مخ

## بېلابېل موضوعات

# د مشرتوب یا قیادت صلاحیت

ژباړه: سمیع الله "دراني"

د مخکنیو زمانو څخه د خلکو په خولو کي دا خبره وه، چي قیادت یا د مشرتوب استعداد مېراثي شی دی، خو نوي تحقیق دا غلطه ثابته کړه. وایي چي د مشرتوب استعداد هر انسان لري، خو په چا کي لږ وي، په چا کي ډېر وي. د دې استعدادونو تعلیم هم کېږي، چي په هغه سره هم ډېرېږي. یوازي سیاست مشرتوب نه غواړي، بلکي هر کار چي اجتماعي کېږي، هغه یو قائد یا مشر ته ضرورت لري.

په قائدانه صلاحیتونو کي ځیني ډېر مهم صلاحیتونه دي، مثلاً: لکه د نورو د متأثر کولو صلاحیت، د نورو د رهنمایي کولو صلاحیت، د نورو د متحرک کولو صلاحیت، د خپلو خبرو په بلیغ ډول کولو صلاحیت، جوش او ولوله، شجاعت، امانتداري او د مسئلو په تخلیقي انداز، د حل کولو صلاحیت او داسي نور.

په خپل شخصیت کي د دې صلاحیتونو له پاره ډېري طریقې دي، موږ یې دلته د څو صلاحیتونو په باره کي څو نکتې بیانوو.

له خلکو سره همدردي، خلوص او محبت وکړئ. پر خلکو بې ځایه تنقید، نفرت کول، د خلکو بېعزتي کول، د مشرتوب له پاره زهر قاتل دي.

د نورو خلکو د رهنمایي له پاره ضروري ده، چي انسان علم ولري. د بې علمه انسان رهنمایي نورو ته کول داسي دي، لکه ړوند چي نورو ته لار ښیي.

د خپلو خلکو د متحرک کولو له پاره ضروري ده، چي قائد معلومات وکړي، چي زما پلویان په کومه وجه را پارېږي. مثلاً: دا معلومه کړي، چي زما پلویان کالو ته ضرورت لري، ډوډۍ غواړي او داسي نور ضرورتونه، چي دا ضرورت یې پوره سي، بیا دوی زما له پاره خدمت کوي. د خپلو مشکلاتو څخه بې غمه کېږي.

د سمي فیصلې له پاره ضروري ده، چي انسان له تجربې کار واخلي. یا تجربه ولري.

په اولو کي به انسان د خپل علم په ذریعه ښه فیصله کوي، بیا یې تجربه پیدا کېږي او له تجربه کارو مشرانو سره مشوره هم کوي.

دا خبره په ذهن کي کښېنول په کار دي، چي انسان باید په دیني امورو کي د مشرتوب غوښتنه و نه کړي، ځکه دا ښه کار نه دی. که بیا هم ده ته یو څوک دا مسئولیت راجع کړي، نو بیا دي پوره اخلاص او کوښښ وکړي او د سیرت څخه موږ ته هم رهنمایي کېږي.

# د ناروا او مبتذلو رسنیو زیانونه

مولوي نورالحق مظهري

رسنۍ که انځوریزي دي، که ږغیزي، که چاپي دي او که ټولنیزي، ټولي د نشراتو له پاره اسباب او ذرایع دي چي هم ښه استفاده ځني کېدلای سي او هم بده استفاده، خو کله چي رسنۍ فاسدي سي یا د فاسدو انسانانو لاس ته ولوېږي، بیا نو ډېر فسادونه ځني پیدا کېږي او د ټولني له پاره ډېر زیانونه لري چي موږ یې ځیني عمده زیانونه په لاندي ډول بیانوو:

–اخلاقي فساد:

د مبتذلو او ناروا رسنیو په سبب، په ټولنه کي اخلاقي فساد وده کوي چي د ټولني هر فرد په خاصه توګه، ځوانان په اخلاقي فساد روږد کېږي چي بالاخره ټول اخلاقي ازرښتونه له پامه غورځول کېږي او خلک د بې حیایۍ لوري ته بېول کېږي چي په تاریخي لحاظ یې لویه بېلګه، د رومیانو امپراطوري ده چي مبتذلو نمایشي لوبو او د بې اخلاقیو خپرونو، په ټولنیز ډول په اخلاقي فساد کي ډوبه کړه او زموږ په زمانه کي یې بېلګه د امارت څخه مخکي زمانه وه چي منفي رسنیزي آزادۍ خلک په ډول – ډول بد اخلاقیو او ابتذال اخته کړل.

– د کورني نظام ګډوډېدل:

د نا اهلو رسنیو د نشراتو په سبب، کورنی نظام سره ګډوډ کېږي، ځکه دوی داسي نشرات کوي چي د انسانانو ترمنځ، حقوقي تړون له منځه وړي او یو انسان د بل انسان حقوق نه پر ځای کوي چي په سبب یې د پلار او زامنو، وروڼو، د مېرمني او خاوند او د خپلوانو تر منځ نفرتونه او کرکي پیدا کېږي چي لویه بېلګه یې غربي ټولنه ده چي یادو حقوقو ته په کښې هیڅ پاملرنه نه کېږي، بلکي د یوې سروې پر اساس، په نولسمه او شلمه پېړیو کي په اروپا کي د طلاق ډېرېدلو او کورني دودیز نظام کمزوري کېدلو سبب همدغه مبتذلي رسنۍ ښوول سوي دي.

–فکري او سیاسي مسمومیت:

نـاروا رسنۍ د خلکو فکرونه او ذهنونه تخریبوي، ځکه په ټولنه کي فکري او سیاسي انحراف رامنځته کېږي چي له امله یې د خلکو فطرتي او اسلامي باورونه ضعیف کېږي او د اسلامي هویت او اسلامي سیاست سره خلک بې ګانه کېږي چي بیا نو خلک د اصلاح او اسلامي نظامونو دښمنان جوړېږي چي لویه بېلګه یې په منځنۍ آسیا کي د کمونیستي شوروي اتحاد تبلیغات ول، چي د خلکو د فکرونو څخه یې له اسلام او اسلامي نظام سره محبت ایستلی او داسي چاپېریال یې حاکم کړی چي په نظامي ډګر کي روس د منځنۍ آسیا هیوادونو څخه وتلی، خو په فکري او سیاسي لحاظ اوس هم ورباندي حاکم دی، ځکه نو د هغو ځایونو په خلکو کي د اسلامي نظام د راتللو له پاره د انقلاب او پاڅون هیڅ څرک نه لیدل کېږي.

د بلي خوا څخه فاسدي رسنۍ د فکري مسمومیت له لاري د خلکو فکرونه دومره فاسد کړي چي آخر خلک د درواغو ښکار سي او د لویو حقائقو څخه انکار کوي.

– ټولنیز تاوتریخوالی او د جرمونو ډېرېدل:

د ناسمو رسنیو په سبب، په ټولنه کي د جرمونو کچه ډېرېږي، ځکه دوی چي کومي ناوړي خپروني یا سریالونه نشروي، د هغو څخه خلکو ته د جرم د کولو نقل ورکوي او خلک په عملي ډول هغو جرمونو ته لاس اچوي چي دوی یې خلکو ته د تمثیل یا ډرامې په شکل نشر کوي، که په نړۍ کي د جرمونو او تخلفاتو نوعیت ته وکتل سي، ډېری یې خلکو د فلمونو او سریالونو څخه زده کړي، چي یوه نمونه یې اختطاف دی، د اختطاف تاریخ ډېر اوږد دی، خو زموږ هیواد ته اختطاف هغه وخت راغی، چي په جمهوریت کي خلکو ناروا ټلوېزیونونو او خارجي سریالونو ته مخه کړه او په هغو کي یې د اختطاف چلونه او طریقې ولیدلې، بله لویه بېلګه یې د امریکا د هالیووډ مبتذل فلمونه دي چي د ۱۹۲۰ مېلادي کلونو را په دې خوا یې په ټولنه کي په سبب ډېر تاوتریخوالی او جنایتونه رامنځته سوي دي.

– د ځوان نسل تباهي او بربادي:

د بدو یا بد اخلاقو رسنیو په سبب، ځوان نسل د اصلاح، پرمختګ او علم پر ځای، شهواتو او اخلاقي انحرافونو ته مخه کوي چي ور سره ځوان نسل د بربادۍ او تباهۍ لوري ته روانېږي. د تاریخ پوهانو په نظر پر اندلس د مسلمانانو د حاکمیت د زوال یو لامل په ځوانانو کي د فحشاء او مبتذلو سندرو خپرېدل و، چي ځوانان یې په عبثو شیانو روږد کړل، د جهاد او قربانۍ احساس یې د ځوانانو څخه واخیستی چي دا شي موږ اوس هم په ځوانانو کي لیدلای سو. زموږ په زمانه کي په ځینو رسنیو کي ځیني خپروني، سندري، غیر شرعي تمثیلي ټوټې، بد اخلاقه فلمونه او په خاصه توګه؛ د ټولنیزو رسنیو څخه ناوړه استفاده، ځوانان د هر ډول مثبتو انګېرنو څخه لیري کړل، بلکي د ځوانانو وجدان، عقل او علمي استعداد یې وواژه.

–د دښمنانو له پاره د فکري جګړې وسیله ګرځېدل:

په دې خاطر چي د اسلام دښمنان تل د اسلام او مسلمانانو پر ضد، فکري جګړه پر مخ بیایي، ځکه نو کوښښ کوي چي له هري ذریعې په خپله ګټه او د اسلام په تاوان استفاده وکړي چي یوه د هغو ذریعو څخه مبتذلي او نا اهله رسنۍ دي. د اسلام دښمنان کوښښ کوي چي له هر طرفه پر مسلمانانو فکري او فرهنګي یرغل وکړي چي د دې کار له پاره د دوی لومړۍ انتخاب رسنیز فعالیت دی چي په هر اړخیز ډول یې په مسلمانانو کي د هر ډول فساد خپرولو له پاره کاروي چي په نتیجه کي همدغه رسنۍ د اسلام د دښمنانو له پاره په شعوري یا غیر شعوري ډول د فکري جګړې یوه وسیله او ذریعه جوړېږي چي په مټ یې د اسلام پر ضد ګڼ شمېر نشرات کوي چي بېلګه یې پر اسلامي هیوادونو د کفري امپراطوریو له نظامي یرغل سره هم مهاله فکري یرغل دی چي تل یې په لومړي قدم کي د رسنیو په ذریعه کړی دی.

څلورم مخ

# د احد ننداره

محسن "احسان"

جنګ احد کي زخمي رسول الله (ص) دی. جنګ پر لا اله الا الله دی.

نن تللي وو د احد غره ته، د شهیدانو میدان ته چي د تاریخ یوه ستره شاهدي ده. د احد غره مخته مي ځان د خیال نړۍ ته واستاوه. دا داسي وه لکه زه چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم او د هغه د ملګرو د مېړاني په منځ کي یم.

د جګړې پیل:

ګورم چي د احد د غازیانو مشري رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپله کوي. صحابه کرامو ته لارښوونه کوي، ځایونه ورته ټاکي: "تاسو دلته پاته سئ او تاسو هلته!" خپل لښکر منظموي او څلوېښت صحابه کرام ته د هغه غره پر سر چي نن د "جبل الرماة" په نامه یادېږي، امر کوي: "که کامیابي مو په برخه سوه او که ماته، له دې ځایه مه کښته کېږئ. زما د امر اطاعت وکړئ!"

جنګ پیل سو. میدان د "لا اله الا الله" په نارو ډک سو. صحابه لکه زخمي زمریان پر مشرکینو ورمات سول، له هر لوري یې کفار شړل. د کفارو لښکر د ماتي په حالت کي تېښته وکړه او مسلمانانو د بریا شکر په سجده کي ادا کړ.

د امر سرغړونه او د جګړې بدلون:

کله چي کفار شاته سول، مسلمانانو د غنیمت ټولولو له پاره منډې کړې. هغه صحابه چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د امر له مخي پر غره پاته وو، په خپلو کي اختلاف وکړ.

ځینو یې ویل: "رسول الله صلی الله علیه وسلم موږ ته د پاته کېدو امر کړی دی." خو ځینو نورو یې ویل: "بریا راغله، غنیمت راټولوو." بالاخره دوی هم له غره کښته سول.

د دې چانس څخه خالد بن ولید، چي هغه وخت د کفارو په لښکر کي و، ګټه واخیسته. د شا له خوا یې د مسلمانانو پر لښکر برید وکړ. جګړه بیرته توده سوه او مسلمانانو درانه زیانونه وګالل. د احد میدان بیا د وینو په ویاله بدل سو. صحابه شهیدان سول، رسول الله صلی الله علیه وسلم سخت زخمي سو او د مبارکو غاښونو شهادت یې د ټولو زړونه ودردول.

د طلحه او ابو عبیده مېړانه:

طلحه بن عبیدالله رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم مخته لکه ډال ودرېدی. د هغه پر بدن اویا زخمونه ولګېدل، خو پر ځای ټینګ پاته سو. د هغه مېړانه د وفادارۍ او قربانۍ بېلګه وه.

په همدې حال کي ابو عبیده بن الجراح رضی الله عنه منډې وهلې، تر څو د رسول الله صلی الله علیه وسلم له شونډي د زغري کړۍ را وباسي. هغه خپل غاښونه وکارول او دومره سخت کش یې وکړ چي خپل دوه غاښونه یې مات کړل، خو د رسول الله صلی الله علیه وسلم د شونډي کړۍ یې پاکه کړه. دا هغه وفاداري وه چي تاریخ به یې تل یادوي.

د حمزه شهادت:

په دې جنګ کي د رسول الله صلی الله علیه وسلم ګران آکا حمزه بن عبدالمطلب رضی الله عنه شهید سو. هغه د اسلام د بریا له پاره خپله وینه قربان کړه. د هغه شهادت یوه داسي غمجنه پېښه وه چي رسول الله صلی الله علیه وسلم او ټول مسلمانان یې سخت ودردول.

د احد پیغام:

د احد میدان نن هم د چیغو – چیغو انعکاس کوي: "د امیر اطاعت وکړئ!" دا جګړه موږ ته دا درس راکوي چي د اتحاد او اطاعت په نه شتون کي کامیابي ناشونې ده. مسلمانانو که څه هم په دې جګړه کي مؤقتي ماته وخوړله، خو د قربانیو، مېړاني او وفادارۍ هغه درسونه یې پرېښوول چي د اسلام د تاریخ زړورتیا یې د تل له پاره ژوندۍ وساتله.

د احد میدان یوازي یو ځای نه دی، بلکي دا د صبر، مېړاني او د الله جل جلاله د لاري له پاره د ځان قربانۍ یوه ستره بېلګه ده.

خوښونه: شهید شیخ رحیم الله "حقاني"

# د شیطان لښکر

(۱۰۵) برخه

## د خوارجو نوې څېره (داعش)

دوهم دلیل:

رسول الله صلی الله علیه وسلم د مکې تر فتحې وړاندې ځینو صحابه کرامو ته په مکه کې د پاته کېدلو اجازه ورکړې وه، سره له دې هغه دارالکفر وو، د بېلګې په توګه خپل تره عباس بن عبدالمطلب رضي الله عنه ته یې اجازه ورکړې وه، ځکه د هغه په اړه دا خطره نه وه چې په فتنه کې به اخته سي او د ذاتي وجاهت او د خانداني رسوخ له امله کافرانو څه مالي یا ځاني زیان هم نه سو ورته رسولای.

له دې څخه ثابته سوه: که په دارالکفر کې د ایمان، ځان او مال د حفاظت یقین وي، نو د اوسېدلو اجازه سته.

البته د حضرت عباس رضي الله عنه په هکله ویلای سو چې هغه د هجرت توان نه درلوده، نو ځکه د هجرت له حکم څخه مستثنا کړل سو، کوم چې د عام مستضعفینو حکم دی.

دریم دلیل:

په مکه کې ځینې صحابه د مشرکانو له تکلیفونو په تنګ سول او عیسایي سیمې (حبشې) ته یې هجرت وکړ او هملته تر هغې مېشت سول چې الله تعالی د مدینې د هجرت حکم وکړ، تر دې چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم کله مدینې منورې ته هجرت وکړ، نو بیا هم ځینې صحابه هلته په حبشه کې مېشت پاته سول او دا هر څه د رسول الله صلی الله علیه وسلم له خوښې سره سم کېدل.

خپله نجاشي تر اسلام وروسته په خپل کفري هیواد کې پاته کېدی، سره د دې چې هغه سره د مدینې د هجرت وسایل او توان و، خو د رسول صلی الله علیه وسلم په اجازې سره هلته په حبشه کې پاته سو او کله چې وفات سو، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم یې غایبانه جنازه ادا کړه او ویې فرمایل:

ژباړه: نن یو نېک سړی وفات سو.

څلورم دلیل:

نامتو تابعي حضرت عطاء بن ابي رباح رحمه الله فرمایي: ما له عبید بن عمیر سره یو ځای د عائشې رضي الله عنها سره ملاقات وکړ او د هجرت په اړه مو پوښتنه ځنې وکړه، نو عائشې رضي الله عنها وفرمایل:

"اوس د هجرت حکم نسته، الله تعالی او د هغه د رسول صلی الله علیه وسلم په لوري د هجرت حکم هغه وخت و چې کله د مسلمانانو په اړه په دیني فتنه کې د اخته کېدلو اندېښنه وه، له همدې امله له بېلابېلو سیمو څخه مسلمانان راغلل او د رسول الله صلی الله علیه وسلم تر څنګ جمع سول، خو اوس الله تعالی اسلام ته پراخي ورکړه، نو چې څوک هر چېري اوسېږي، د خپل رب عبادت دي کوي البته جهاد او نیت باقي دی."

حافظ ابن حجر رحمه الله تر دې حدیث لاندې لیکي: "د حضرت عائشه رضي الله عنها اشاره دې لوري ته ده چې د هجرت حکم مطلق نه دی، بلکې د فتنې له علت سره تړلی دی.

علت که موجود وي، نو حکم به هم موجود وي، که علت نه وي، نو حکم به هم نه وي او همدا راز هغه هیوادونه چې هلته د مسلمانانو له پاره له دیني اړخه هیڅ فتنه نسته، هلته په اوسېدلو کې هیڅ مشکل نسته او هلته پر مېشتو مسلمانانو باندې هجرت واجب نه دی.

(فتح الباري ۷/۲۹۰)

علامه ماوردي رحمة الله فرمایي: "په کوم کفري هیواد کې چې مسلمانانو ته پر خپل دین باندې د علم کولو مکمله اجازه وي، نو هغه د دارالاسلام په حکم کې دی او د دارالاسلام په نسبت، هلته پاته کېدل زیات فضیلت لري، ځکه چې هلته د اسلامي دعوت او اشاعت امکانات زیات دي.

(الحاوي للماوردي: ۱۸/۱۱۱)

راجح قول: په غور کولو سره د جمهورو مؤقف راجح معلومېږي.

اسباب ترجیح:

د دې ترجیح څو اسباب:

لومړی سبب:

د عدم جواز له پاره چې کوم روایتونه وړاندې سول، هغه د طعن څخه خالي نه دي، که صحیح یې ومنو، هم نو محل به یې هغه هیوادونه وي، چې هلته د مسلمانانو دین له خطر سره مخامخ کېږي او د فقهي ضابطه ده: چې کله په یو دلیل کې بل احتمال هم پیدا سي، نو هغه دلیل د یوې معنی له پاره متعین نه وي او پر هغه باندې استدلال باطل دی. نور بیا...

# د انار (Pomegranate) د ښاخونو له منځه وړلو (Pruning) طریقه

محمد سلیم "امیري"



انار یو مېوه لرونکی بوټی دی چې د ښه حاصل او د محصول کیفیت له پاره، د اضافه ښاخونو پرې کول خورا مهم دي. ښاخ پرې کول، د بوټي د شکل او جوړښت سمبالولو، د هوا د جریان ښه کولو او د مېوو د کیفیت او مقدار زیاتولو له پاره تر سره کېږي. د انار د ښاخ پرې کولو په اړه لاندني معلومات وړاندې کېږي:

د انار د ښاخ پرې کولو هدفونه:

۱– د بوټي شکل سمبالول: انار باید د یو سم او متوازن شکل له پاره ښاخونه پرې کړل سي.

۲– د مېوو د تولید زیاتول: ښاخ پرې کول، د هغو ځانګو او ښاخونو لیرې کولو له پاره تر سره کېږي چې د مېوو په تولید کې مرسته نه کوي.

۳– د هوا او رڼا د جریان ښه کول: له ښاخ پرې کولو سره، د بوټي دننه هوا او رڼا ته لاسرسی زیاتوي، چې د ناروغیو او آفتونو مخه نیسي.

۴– د بوټي روغتیا ساتل: د بې کاره او زړو ښاخونو لیرې کول، د بوټي روغتیا ته ګټه رسوي.

۱– د مرکزي تنې د ساتلو هڅه وکړئ:

– د انار بوټي باید یو قوي مرکزي تنه ولري. ښاخ پرې کول، باید داسې وسي چې د مرکزي تنې او اصلي ښاخونو ترمنځ، ځای پر ځای سي.

– د هغو ځانګو لیرې کول چې له مرکزي تنې سره نژدې وي، د بوټي شکل او جوړښت ته ښه والي ورکوي.

۲– د زړو او بې کارو ځانګو لیرې کول:

– هر کال د انار بوټي څخه د هغو ځانګو لیرې کول چې زړې، ماتې سوې یا بې کاره وي، د بوټي د روغتیا له پاره اړین دي.

– دا ځانګې په داسې توګه لیرې کړی چې د بوټي عمومي شکل او جوړښت خراب نه سي.

۳– د نوو ښاخونو پرې کول:

– د نوو ښاخونو څخه هغه ښاخونه پرې کړئ چې د بوټي د ښې ودې له پاره اړین نه وي. دا ښاخونه باید یوازې د ځانګو په پراخه کولو کې مرسته وکړي، نه د مېوو تولید ته.

– د هغو ښاخونو اندازه باید په داسې ډول کمه سي چې بوټي د ښه تولید له پاره ځای ولري.

۴– د ګلونو او مېوو تولید ته وده ورکول:

– د بوټي د ژوند زیاتول: ښاخ پرې کول، د بوټي د ژوند له پاره ګټور دي، ځکه چې دا د بې کارو ځانګو او ښاخونو لیرې کولو سره د بوټي روغتیا ساتي.

نکات:

– د ښاخ پرې کولو پر مهال، ډاډ ترلاسه کړئ چې ښاخونه په سم ځای کې پرې کېږي. د ښاخونو پرې کول باید د بوټي له طبیعي جوړښت سره سم وي.

– د ښاخ پرې کولو پر مهال، د ښاخونو پرې کول، باید د بوټي زړه او اصلي ښاخونو ته زیان و نه رسوي.

– د ښاخ پرې کولو پر وخت د بوټي روغتیا ته پام وکړئ او که چېري تاسو شک لرئ، نو له یو متخصص سره مشوره وکړئ.

پایله:

د انار ښاخ پرې کولو ته پام کول، د بوټي د روغتیا، مېوو د کیفیت او د ښه محصول له پاره خورا مهم دي. د ښاخ پرې کولو تر ټولو غوره وخت د ژمي پیل دی او ښاخ پرې کول باید په دقت او سم ډول تر سره سي، تر څو د بوټي شکل او تولید ته زیان و نه رسوي.

# د سهار ناشته مو د شکرې او چاغښت مخنیوی کوي

ډاکټره راضیه "مفیضه"

په بریتانیا کې د یوې سوې تر سره سوې څېړنې له لارې ویل سوي چې سهار ناشته کول، د انسان په بدن کې د وازګې پیدا کولو حجرې چې ورڅخه د شکرې ناروغي پیدا کېږي، د ذخیره کولو پر ځای، په حرکت کې راولي.

دغه کار د بدن انسولین په تنظیمولو کې مرسته کوي، چې د وینې د شکرې کچه کنټرولوي او همدارنګه په بدن کې د اضافي غوړ پیدا کولو مخنیوی کوي، کوم چې د شکرې، زړه او نورو ناروغیو لامل کېږي.

په څېړنه کې ویل سوي، چې په ورځنیو خوراکونو کې تر ټولو غوره غذا د سهار چای/ناشته ده، کوم چې بدن ته فزیکي انرژي ورکوي او د چاغوالي مخنیوی کوي.

شعر او آدب

# د طلوع زریني وړانګې

نظم

مقبور "شهیدزی"

ولي شراب ولي رباب ولي ټنګ وستایمه
څه دي پر ما چې د پخې توري شرنګ نه ستایمه
چې ملتونه یې ژغورلي د ذلت له کندې
زما غیرت داده چې زه به جنګ هغه ستایمه

نه د چا پښو ته سر ټیټي کړم او نه ځم پر بله
نه له تاوړمه اسلامه نه دي وړم پر بله
زه او اسلام لکه آدم او د رخانۍ داسي یو
نه د رخانۍ پر بله ځي او نه آدم پر بله

تاته زاری کوم خاونده ما خراب مه کړې!
ما د باطلو ډلو مشر او نواب مه کړې
ما په رښتیا کړې د اسلام او د وطن نومیالی
ما د چمچه خلکو په خوله باندي جناب مه کړې

زه د خپل ځان په اړه دومره تبصره لرمه
د مسلمان په اړه دومره تبصره لرمه
له دین ځارېږي بس که چیرته ضرورت پیدا سي
د سوچ افغان په اړه دومره تبصره لرمه

خومره مزه کړي د ډيوې او د پتنګ ناسته
په افغاني تاریخ کې نه ښکاري له جنګ ناسته
تش په قلم د ملتونو عـزت کله راځي
مومي ذلت د چا چې توره وي له شرنګ ناسته

لا مې آذان په غوږ کې سته لا مې بلال یاد دی
ماته د ګران رسول الله (ص) توره او ډال یاد دی
په افغاني تاریخ کې هم ډېر مېړني لرمه
ماته میرویس ماته ایوب ماته ابدال یاد دی

د نړۍ والو غرور سفر بس غوغا پاته ده
د مور نوبت تېر دی نړۍ! وار د آباپاتې ده
ترجماني کوي د سپو خو تفرقه یې نسته
د داعشیانو په خولګیو هم غپا پاتې ده

لا نجه د مځکې کې یې وورو په وینو رنګ ښکاري
د پښتنو په زړو د تېر جهالت زنګ ښکاري
که د خدای دین ورباندې بوج نه وي نو څه وجه ده؟
چې اسلامي هیواد کې ځینو ته زړه تنګ ښکاري
غربت ته مات نه دی مزل کړي تر نګاره پوري
د ابوذر غوندي "مقبور" د وخت ملنګ ښکاري

Tolo E Afghan Journal

طلوع افغان مدیریت له ټاکلي لیکنیز معیار سره سم، د لیکنو په اصلاح کې د لاسوهني حق لري.

ګرانو لوستونکو! په ډېر احترام هیله کېږي، چې دا سپېڅلي پاڼې بې ځایه و نه غورځوئ!

## د ګڼون کوونکو له پاره خبرتیا!

د طلوع افغان تاریخي خپرونه چې د هیواد په مطبوعاتي تاریخ کې ځانګړی ځای لري. که غواړئ چې د لمریز کال په آخر کې د طلوع افغان تاریخي ورځپاڼې یو بشپړ کلکسیون ولرئ، نو په طلوع افغان ورځپانه کې ګډون وکړئ.

د ګډون کلنۍ بیه ۵۰۰- پنځه سوه افغانۍ، زده کوونکو او محصلینو ته د تصدیق په وړاندې کولو سره نیمه بیه ټاکل سوې ده. اداره

مسئول مدیر: ـــــ بریالی "فیضي"

د تصحیح مسئول: ـــــ حاجي عبدالله "ذاکري"

کمپوز او ډیزاین: ـــــ نصیر احمد "صابر"

د مدیریت شمېره: ـــــ ۰۷۰۵۶۰۸۶۷۳

د توزیع مدیریت شمېره: ـــــ ۰۷۰۰۴۹۱۴۳۶

پته: ـــــ علامه حبیبي واټ – اطلاعات او فرهنګ ریاست

د برېښنالیک پته: ـــــ Afghan.tolo@yahoo.com

Founded in 1921 ISSue: 68 Established in 1300 Hijri


# اعلانونه او خبرتیاوي

**(۱) مخ پاته: افغانستان او چین د...**

د افغانستان له لارې له جنوبي آسیا هیوادونو سره نښلوي، خبرې سوې او د ټولګټو وزارت سرپرست ډاډ ورکړی چې دغه وزارت د دې پروژې پیل ته بشپړ چمتووالی لري.

د کتنې په پای کې د افغانستان او چین ترمنځ، د دوامداره اقتصادي اړیکو، سوداګریزې راکړې – ورکړې او د زېربنایي پروژو په برخه کې پر لازمي همکارۍ ټینګار سوی دی.

د بل خبر له مخې د اقتصاد وزارت سرپرست قاري دین محمد حنیف، په کابل کې د جاپان له سفیر تاکایوشي کوروماپا سره کتلي دي.

د اقتصاد وزارت په خپره سوې خبرپاڼه کې راغلي، په دې کتنه کې دواړو لوریو د اقتصادي همکارۍ د ښه والي او د بشري مرستو د اغېزمنتوب او دوام په اړه خبرې کړې دي.

د جاپان سفیر، په ۲۰۲۴ مېلادي کال کې د دې هیواد د شاوخوا ۲۷,۴ میلیونو ډالرو بشري مرستو په اړه معلومات ورکړي چې په افغانستان کې د ملګرو ملتو سازمان اړوندو ادارو له لارې په بېلابېلو برخو کې پلې سوې دي.

هغه، په ۲۰۲۵ مېلادي کال کې له افغانستان سره د روغتیا، تعلیم، له نشه یي توکو سره د مبارزې، بدیل معیشت، د اوبو مدیریت، له اقلیم بدلون سره د مبارزې او د بې ځایه سوو او راستنېدونکو ستونزو د حل په برخو کې د خپل هیواد د پراختیایي او بشري مرستو د دوام ډاډ ورکړی دی.

د اقتصاد وزارت سرپرست هم په خپلو خبرو کې د راستنېدونکو او د طبیعي پېښو له امله د زیانمن سوو له پاره د جاپان د بشري مرستو قدرداني کړې او په بېلابېلو برخو کې د متوازني پراختیا اصل په پام کې نیولو سره یې، د یاد هیواد د پراختیایي مرستو د ډېر تمرکز غوښتنه کړې ده، چې له دې لارې به کاري فرصتونه رامنځته او د خلکو د ژوندانه وضعیت ښه سي.

**(۱) مخ پاته: د کتابونو د ریږورځنی...**

کتابونه یې رانیولي دي.

د هغه په قول، په دې نندارتون کې کتاب رانیوونکو ته د کره کښۍ له لارې بېلابېلې جایزې هم ورکړل سوې، چې په دې جایزو کې درې عرادې بایسکلونه، یوه پایه لپ ټاپ کمپیوټر، درې سیټه موبایلونه، ۲۰۰ ګیلاسونه، ۸۰۰ قلمونه، ۱۰۰ بستې، ۳۰ عدده ساعتونه، ۸۰۰ کتابچې او ۱۱۰۰ کتابونه شامل وو.

پر همدې مهال د کتاب پلورونکو د اتحادیې مشر حکمت الله حکمت ویلي، په دې نندارتون کې د ۷۰ کتاب پلورونکو له خوا بېلابېل دیني او عصري کتابونه وپلورل سول، چې د هغې جملې څخه زیاته برخه یې معلوماتي کتابونه وو.

هغه زیاته کړه، کتاب پلورونکو په دې نندارتون کې د کتاب بیې ته په کتو سره، د ۱۰ څخه تر ۳۰ سلنه پورې تخفیف کړی و.

د حکمت په قول، کتاب پلورونکي د دې نندارتون د جوړېدو څخه ځکه خوښ ول، چې په زیات شمېر کتابونه یې په کښې خرڅ سول.

هغه د ځوانانو څخه وغوښتل چې پر ټیلیفون او ټولنیزو رسنیو باندې د وخت د ضایع کولو پر ځای دي، د خپل راتلونکي د ښه والي په موخه، د کتابونو مطالعه وکړي.

د یادونې وړ ده، چې د کتابونو دغه درې ورځنی نندارتون، د کندهار د اطلاعات او فرهنګ ریاست له خوا، د افغان بېسیم مخابراتي شبکې په همکارۍ جوړ سوی و.

**(۱) مخ پاته: یو چیک ډیم او د اوبو...**

او خوراک نړیوال سازمان (FAO) په مالي ملاتړ، د یادي ولسوالۍ د سرداغ په سیمه کې د ۶ زره ۱۰۶ امریکایي ډالرو په ارزښت، د اوبو ذخیره کولو یو چیک ډیم جوړ او ګټې اخیستنې ته سپارل سوی دی.

یاد چیک ډېم د ۳۲ متره اوږدوالي او ۳,۶ متره په لوړوالي سره، د ۴۰ ورځو په ترڅ کې جوړ سو چې لسونو کسانو ته په کښې په فني او غیر فني برخو کې کاري زمینه برابره سوې وه.

د بل خبر له مخې د کندهار ولایت په نېش ولسوالۍ کې ۱۵ زره د اوبو کندې جوړې او ګټې اخیستنې سپارل سوي دي.

د کرهنې، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست مطبوعاتي مسئول محمد حنیف حقمل ویلي، د خوراک او کرهنې نړیوال سازمان (ایف. ای. او) په مالي ملاتړ، د بشري خیریه (او. ایچ. ډبلیو) مؤسسې په تخنیکي همکارۍ، په نېش ولسوالۍ کې د ۴۰ زره امریکایي ډالرو په ارزښت، ۱۵ زره د اوبو کندې جوړې او ګټې اخیستنې ته وسپارل سوې، چې پر مهال یې ۲۰۰ کسانو ته کاري زمینه هم برابره سوې وه.

د دې پروژې هدف سیمه ییزو اوسېدونکو ته د کار زمینه برابرول، د باراني اوبو راټولول او تر ځمکې لاندې اوبو سطحه لوړول دي، چې په ترڅ کې به یې د زیات شمېر بزګرانو او مالدارانو ستونزې حل سي.

**(۱) مخ پاته: د ۱۹ کیلومتره سړک....**

بشپړې کړي دي.

یاد سړک د سپین بولدک ولسوالۍ اړوند، د فرضي کرښې اغزن تار ته نژدې، په صفري نقطه کې پروت دی، د دې سړک په جوړولو سره د اړوند کندېکونو د امنیتي ځواکونو د وسایطو د تګ او راتګ په برخه کې ډېره اسانتیا رامنځته سوې ده.

**(۱) مخ پاته: له ۲۰ ۲ بېوزلو او...**

نغدي پیسې، اوړه او غوړي شامل ول.

له یادي اداري سره تر دوه زره ډېرې کونډیاني، یتیمان، اړمني او سوال کوونکي کورنۍ ثبت دي او د یوې ځانګړې پروسې له لارې ور سره هره میاشت مرسته کېږي.

**(۱) مخ پاته: د اومانو یوه کارخونه...**

په یاده کارخونه کې ۱۷۵۰ کیلو ګرامه اومان، ۱۶ ډبې تېزاب، ۵۰ کیلوګرامه اهاک، ۳۰ ګونۍ سوډا، ۶ دانې د ګازو ډبې او ځینې نور اجناس چې د اومانو د جوړولو له پاره ګټه ځنې پورته کېدله، په بشپړ ډول له منځه وړل سوي او د یادې کارخونې په تړاو څلور تنه هم نیول سوي، چې تر یو لړ څېړنو وروسته به اړوندو ارګانونو ته وسپارل سي.

**(۲) مخ پاته: د نړوال او مبتذلو رسنیو...**

– د دیني او کلتوري ارزښتونو تخریب او سپکاوی:

مبتذلې رسنۍ د پروپاګند کولو او دروغو ویلو له لارې کوښښ کوي چې دیني او کلتوري ارزښتونه تخریب کړي او سپکاوی یې وکړي، که د رسنیو تاریخ مطالعه کړو، دا به راته ثابته سي چې غلطو رسنیو په خلکو کې د مقدساتو د ارزښت کمولو په هدف، د دیني او فرهنګي مقدساتو ډېر سپکاوی کړی او مسلمان شخصیتونه یې په ډېرو بدو نومونو نومولي دي چې تر ټولو لویه بېلګه یې پر مجاهدینو د تروریست نوم ایښوول دي او دیني علماء کرام په سادګۍ او شرارت تورن کول دي.

د عثماني خلافت په وخت کې چې مسلمانانو ډېر پرمختګ کړی و، یهودانو او منافقانو د همدغو رسنیو په مرسته، د خلافت د مشرانو پر ضد منفي تبلیغات کول او په خلکو کې یې ډول – ډول بې ځایه شائعات خپرول آن تر دې چې د عثماني خلافت سلطان عبدالعزیز یې بدنام کړ او خلک یې د هغه پر ضد راوپارول، ترڅو خلک یې نوته کړل، د سلطان عبدالعزیز پر ضد یې پاڅون وکړ، د منافقانو په دسیسه یې هغه عزل کړ او بیا یې په مرموز شکل وواژه.

– د دولت او ملت ترمنځ واټن پیدا کول:

اسلام دښمني رسنۍ تل کوښښ کوي چې د حاکم اسلامي نظام او خلکو ترمنځ، واټن پیدا کړي، ځکه نو تل د نظام د ضعف نقطې بیانوي او لاس ته راوړنې یې پټوي او کله ناکله بیا د سیاسي مبصرینو په نامه ځینې سیاسي منحرفین مېلمانه کوي، ترڅو په خپلو غلطو تحلیلونو خلک دوکه کړي او د نظام پر ضد یې راوپاروي.

## ټولنیزې رسنۍ

**Nisar Samad Wasifi:**

اخلاقي کنایه:

زموږ د ډېرو ویناوې پیوستون ته ځي، خو عمل مو بېلتون ته ځي.

**عبدالواسع "سمسور":**

موږ او تاسو ډېر وخت داسې توقعات د یو او بل څخه لرو، چې موږ او تاسو خپله یې په پوره کولو کې پاته راځو، مثلاً موږ د نورو څخه د صداقت، مینې، وفا او ښې ملګرتیا طمعه لرو، خو کله چې دا کارونه موږ ته راجع سي، موږ پاته په کښې راځو او نه یې سر کولای.

**Dr Aman Shams:**

د مچۍ یا غالبوزې د چیچلو په صورت کې ډېری خلک په خپله ښه کېږي او درملنې ته اړتیا نه لري، خو که د چا مخ، خوله او ستونی و پړسېږي او یا ناروغ ته سرچرخي او ساه بندي پیدا سي، په بېړه یې تر روغتونه ورسوئ، ځکه د دې کسانو وجود د مچۍ د زهرو په وړاندې فوق العاده شدید حساسیت لري او که په چټکۍ سره یې علاج و نه سي، کېدای سي د ناروغ د مرګ باعث سي.

**محمد خالد "خالد":**

له سرساتنې پرته؛ یوه اړتیا هم په دې نه ارزي چې انسان یې له امله هیواد پرېږدي، دا خبره به هغه وخت و منی، چې کله مسافر سئ، البته موخه مې له وطنه کډه کول دي، نه د کار او تعلیم له پاره انفرادي تګ او راتګ.

نو لطفاً تر کډې کولو وړاندې، په بېلابېلو وختونو کې سل ځله په دې اړه فکر وکړئ!

**Ahmadullah Zaki:**

په هر حالت کې چې قرار لرې، د لوی رب جل جلاله شکر ادا ینه وکړه او آرام اوسه! چاته د خنډ، مشکلاتو او ستونزو جوړولو پلان هیڅکله مه جوړوه، حتی فکر یې لا هم مه کوه، کوښښ وکړه چې په ژوند کې د بخښنې عادتونه ډېر کړې، د خلکو بد هېروه او نېکې یې یاد ساته.

ان شاء الله ښه ژوند به ستا وي.

**حافظ ضیاء الله "هاشمي":**

هغه خلک به هیڅکله ګمراه نه سي چې دوی د اسلام د ارتقاء په خاطر لوی هدفونه لري.

**احمد جان "نظري":**

حافظ ابن القیم رحمه الله ویلي:

د ګناهونو د بدو اثراتو څخه یو دادی چې د بنده کارونه سخت سي، هري خوا ته چې مخ کړي، دروازې پر بندې او کارونه یې ګران سي.

(الداء والدواء ص ۱۳۴)

**حسیب "نورمل":**

هر مسلک او دندې ته تر ور ننوتلو\داخلېدو مخکې باید د هغه مسلک اړوند اخلاق زده سي. (نورمل)

**Zahir Khan Mobariz:**

چا چې غم، خیانت او یوازیتوب زغملی وي، په اسانۍ سره نه ماتېږي!